## سریزه:

دا مقاله لنین د جرمني امپریالیستانو په وړاندې د دفاع لپاره له انګلستان او فرانسې څخه د وسلو او خوړو اخیستلو د اړتیا په اړه او د اوپوزیسیون ډلې («کیڼو کمونیستانو») د اندونو د ردولو په خاطر د ۱۹۱۸م کال د فبرورۍ په ۲۲مه نېټه لیکلې ده.

کله چې د خلکو د کمیسارانو جرګه د فبرورۍ په ۲۱مه جوړه شوه، کیڼو سوسیال رولوسیونرانو له متفقینو څخه د مرستو له اخیستلو سره مخالفت وکړ او په پایله کې یې لاندې پرېکړه لیک په هغه غونډه کې تصویب شو:

«د خوړو او جنګي وسلو د لاس ته راوړلو لپاره له متفقینو سره د مذاکراتو پر سر د اختلاف په رڼا کې، غونډه د ګډونوالو ډلو د خپل منځي بحث لپاره بل مهال ته وځنډېدله.»

لنین د مرکزي کمیټې د فبرورۍ د ۲۲مې نېټې په غونډه کې، چې دې موضوع ته د رسېدو لپاره جوړه شوې وه، شتون نه درلوده. نو په همدې دلیل یې خپل نظر دوی ته په دې بڼه ورولېږلو:

«د روسیې د بلشویک ګوند مرکزي کمیټې ته: هیله کووم، چې زما رایه د انګلیس او فرانسې له غارتګرو امپریالیستانو څخه د کچالانو او وسلې اخیستلو په ګټه ومنئ.»

ګوند د مرکزي کمیټې د پنځو رایو په وړاندې په شپږو رایو سره داسې پرېکړه وکړه، چې د هغې پر بنسټ **په بهرني سیاست کې د**

**بشپړې خپلواکۍ په ساتلو سره** د پانګه والو هېوادونو له دولتونو څخه د شوروي د انقلابي پوځ د اړتیاوو پوره کول مجاز وګڼل شول.

له رایو ورکولو وروسته بوخارین د ګوند له مرکزي کمیټې او د «پراودا» له لیکوال پلاوي څخه خپله استعفا وړاندې کړه. برسېره پر دې د «کیڼو کمونیستانو» له ډلې څخه ۱۱ نورو کسانو، لکه لومو، اورستسکی، بابنف، بیاتاکو او نورو د ګوند مرکزي کمیټې ته یوه وینا وروسپارله، چې په هغې کې یې مرکزي کمیټه له نړېوالې بورژوازۍ سره په جوړجاړي تورنه کړه او اعلام یې وکړ، چې د مرکزي کمیټې دغه سیاست پر ضد به په پراخو تبلیغاتو لاس پورې کړي. په هماغه ورځ له متفقینو څخه د وسلې او خواړو د اخیستلو مسئله دوهم ځل لپاره او دا ځل د خلکو د کمیسارانو جرګې لخوا د خبرو او اترو او د څېړنې لاندې ونیول شوه او خپله رایه یې د مرکزي کمیټې د نظر په ګټه صادره کړله.

# خارښت

خارښت ځورونکې رنځوري ده. کله چې ځينې کسان د انقلابي عبارت الوزولو په خارښت اخته کېږي، نو دې ناروغۍ ته يوازې کتل په انسان کې بې زغمه کړاو رامنځ ته کوي.

هغه حقيقتونه، چې د کارګرې طبقې ټولو اړوندو کسانو ته ساده، روښانه، د پوهېدو وړ، ښکاره او ظاهرن جروبحث ته اړتيا نلري، د هغو کسانو له خوا، چې له پورتنۍ يادشوې ناروغۍ څخه کړېږي، په دغلکارۍ سره تحريفيږي. دغه تحريفات غالباً له تر ټولو ښو، تر ټولو اصيلو او ترټولو لوړو انګېزو څخه سرچېنه اخلي او سرته رسول يې هم «يوازې» د معروفو او پېژندل شويو تيوريکو حقايقو د نه هضمېدو له کبله او هغه هم په ماشوم ډوله او د ښوونځي هلکانو په توګه بې اړونده او بې ځنډه تکرارولو بنه لري. خو خارښت د هغو له ځورولو څخه ډډه نه کوي.

د بېلګې په توګه، څه شی کېدلای شي له دې حقيقت څخه لا پرېکړنده او لا ښکاره واوسي، چې: هغه دولت نه ماتېدونکی دی، چې خلکو ته يې، چې درې بشپړه کلونه يې د يوې وحشيانه جګړې په شکنجې کې تېرول، د شوراګانو ځواک، زمکې، د کارګرانو کنټرول او **سوله** ورکړې ده. سوله تر ټولو مهمه مسئله ده. که چېرې داسې مالومه شوه چې د **جدي** هڅو سره سره **په اوسنيو شرايطو کې** د عادلانه او عمومي سولې ټينګېدل شوني نه دي، هر بزګر په دې پوهېږي، چې بيا مجبورن له عمومي سولې څخه تېر شي او يوې جلا

او غیرعادلانه سولې ته باید غاړه کېښودل شي. هر بزګر، آن د دوی ترټولو ناپوه او تر ټولو بې سواده په دې مسئلې پوهېدالای شي او هغه دولت **ستايي**، چې دا سوله يې ده ته ورکړې ده.

بلشویکان ښايي د انقلابي جملو الوزولو په کرکجن خارښت اخته شوي وي، چې دا مسئله هېره کړي او کله چې د غارتګر آلمان له خوا د کمزورې شوې روسيې پر ضد دا خارښت د يوې نوې جګړې لامل ګرځېدلې وي، نو د بزګرانو تر ټولو برحقه نارضايتي د ځان پر ضد راپاروي. ما د «انقلابی جملو الوزولو» په ليکنه(پراودا ــ د فبروری ۲۱مه) کې هغو سفسطو او «تيوريکه» مبتذله، چټي او خندونکو خبرو ته، چې دغه خارښت يې تر شا پټ شوی، اشاره کړې ده. که د هماغه خارښت (چې څه بده ساري ناروغي ده!) نني پيدايښت په يوه نوي موقعيت کې نه وای، نو ما دا مسئله له ياده ايستلې وه. د دې مسئلې د روښانتيا لپاره او دا چې څنګه پېښه شوې ده، يوه بېلګه راوړم، چې کاملن ساده او واضحه او له هر راز «تيوری» څخه تشه ده:

يوه شېبه تصور وکړئ، کالیایف[1] د دې لپاره چې يو دېوصفته ظالم له پښو راوغورځوي، له يوه ايله ګرد او وزګاره غله څخه ټوپک اخلي او ورسره ژمنه کوي، چې د دې خدمت په بدل کې به ده ته روپۍ، ډودۍ او ودکا ورکړي. آيا څوک کولای شي کاليايف له «غله

[1]کالیالیف د سوسیال رولوسیونر ګوند يو غړی ؤ او په يو لړ تروريستی عملياتو کې يې برخه واخيسته. د ۱۹۵۰م کال په ۲/۴ مه کې يې د مسکو حکمران وواژه. دی د هماغه کال د مې مياشتې په ۱۰مه اعدام شو.

سره د دغې معاملې» په خاطر یوازې د دې لپاره چې له غله څخه یې یوه وژونکې وسله ترلاسه کړې ده، محکوم کړي؟ هر عاقل انسان ځواب ورکوي: «نه»، که کالیایف له بل هېڅ ځایه نشي کولای وسله برابره کړي او که د ده موخه حقیقتاً ارزښتناکه ده (د یوه مستبد وژل، نه د لوټلولو لپاره وژل)، په هغه صورت کې د ملامتولو وړ نه دی، بلکې د ستاینې وړ دی، چې له یوې داسې لارې یې ټوپک لاس ته راوړی دی.

خو که یو غل د لوټلو په موخه د وژلو لپاره له بل غله څخه یو ټوپک وپېري او په بدل کې هغه ته روپې، ډوډۍ او ودکا ورکړي، په هغه صورت کې آیا کولای شو له «یوه غله سره» دغه معامله له هغې معاملې سره چې کالیایف تر سره کړې، پرتله کړو؟ (بې له دې چې منظور په خپلو منځونو کې د دې دوو کسانو مقایسه وي.)

نه، هر هغه چا چې خپل عقل یې له لاسه نه وي ورکړی، یا د خارښت په ناروغۍ نه وي اخته شوی، مني، چې داسې پرتله ترسره کوولای نشي. هر بزگر چې ووینې یو «روښان اندی» یو داسې ښکاره حقیقت په انقلابي جمله الوزولو ردوي، هغه ته به ووايي: تاسو ښاغلی نباید د مملکت چارې په لاس کې ونیسی، بلکې ښايي د کړتنو دلقکانو له ډلې سره یوځای شی او یا په ساده ډول د بخار حمام ته وردننه شئ، چې خارښت مو له منځه لاړ شي.

که کرنسکي، دا د بورژوازۍ واکمنې ډلې استازی، یانې لوټماران، له انگریزي ـ فرانسوي لوټمارو سره موافقې ته ورسېږي، چې له هغو څخه وسلې او کچالان ترلاسه کړي او هم مهاله له هغو

سره جاړجوړښت د خلکو له سترګو پټ کړي، یانې (د بري په صورت کې) ارمنستان، کالیسیا او کنسنانتیلوپ یوه غله ته او بغداد او روسیه او داسي نور ځایونه بل غله ته ورکړي، آیا په دې مسئلې پوهېدل ستونزمن دي، چې دا د کرنسکي او د هغه د دوستانو له خوا لوټېرېره او تالانګره معامله ده؟

نه، په دې مسئلې پوهېدل ستونزمن نه دي. هر بزګر ان د دوی تر ټولو نادان او تر ټولو بېسواد به هم په دې مسئلې پوه شي.

خو که د لوټ شوې او تر ستم لاندې طبقې استازي وروسته له هغې چې دغه طبقې، د ستمګرو طبقه راوپرځولې وي او ټول پټ او مل قراردادونه یې خپاره او لغوه کړي وي، د آلماني امپریالیستانو له وحشیانه یرغل سره مخامخ شي، آیا کولای شوو، چې هغه له انګریزي ـ فرانسوي غلو سره د «معاملې» په خاطر د روپیو، لرګو او نورو... ورکولو په بدل کې د وسلې او کچالانو اخیستلو لپاره وغندو؟ آیا کوولای شوو داسې معامله ، بې ارزښته، ننګینه او کرغېړنه وبولو؟

نه، نشو کوولای. هر عاقل سړی په دې موضوع پوهېږي او هغه کسان به د شودو او احمقو په توګه تر ملنډو لاندې ونیسي، چې هڅه کوي په «ارباب ډوله» او مغروره توګه ثابت کړي، چې «ولسونه» د امپریالیست کرنسکي تالانګرې جګړې (او له غلو سره د غنیمتونو د وېشلو په سر، چې په ګډه یې غلا کړي، د هغه د ننګینې معاملې) او د بلشویک دولت د کالیایف ډوله معاملې په توپیر، چې د انګریزي او فرانسوي غلو سره یې د کچالانو او وسلې ترلاسه کولو لپاره د آلمان د تېري د دفع کولو په موخه ترسره کېږي، «نه پوهېږي».

هر عاقل کس به ووايي: د غلا لپاره له يوه غله څخه د وسلې اخيستل د کرکې وړ او جنايت دی، خو له هماغه غله څخه د يوه يرغلگر پر ضد د عادلانه جگړې لپاره وسله اخيستل يو کاملاً معقول او په حقه کار دی. يوازې نازولې پېغلې او نازپالي ځوانان، چې «کتابونه يې لوستلي» او د هغو له مينځه يې له تظاهر او تکبر پرته نور هېڅ نه دي رايستلي، دې عمل ته د يو «کرغېړن» شي په توگه گوري.

له دې ډلې څخه پرته يوازې هغه کسان، چې د خاربنت په ناروغتيا اخته شوي وي، کولای شي يوه داسې «اشتباه» وکړي.

خو آيا آلمانی کارگر کولای شي، له ترکانو څخه د کنستان ـ تيلوپ، له اتريشيانو څخه د گاليسيا او آلمانانو څخه د شرقي پروس د الحاق په موخه د انگريزي او فرانسوي غلو څخه د کرنسکي د وسلې اخيستلو او د ويلهلم د تېري د دفعې لپاره له هماغه غله څخه د بلشويکانو د وسلې د اخيستلو سفارش په توپير پوه شي؟ په داسې حال کې چې ويلهلم خپلې لښکرې د سوسياليستي روسيې پر ضد ، چې ټولو دولتونو ته يې د عادلانه سولې وړانديز کړی او ټولو ته يې بلنه ورکړې، چې جنگ ته د پای ټکی کيږدي، راويستلې دي.

دا ټکی بايد روښانه وي، چې آلمانی کارگران په دې مسئلې بايد «پوه» شي، ځکه چې لمړی دوی هوښيار او د تحصيل خاوندان دي او دوهم د دې لپاره چې دوی له يوه منظم او با کلتوره ژوندانه سره عادت کړی او په کلي توگه نه له روسي ډوله خاربنت څخه رنځ وړي او نه هم په ځانگړې توگه د انقلابی جمله الوزولو له خاربنته.

آیا د غلا په موخه د وژلو او د یوه یرغلګر د وژلو تر مینځ توپیر شته؟ آیا د غنیمت د وېشلو پر سر د دوو لوټمارو ډلو تر منځ د جګړې او د یوه لوټمار له یرغل څخه د خلاصون لپاره د هغه خلکو د عادلانه جګړې تر منځ، چې لوټماران یې راپرزولي، توپیر شته؟

آیا د دې مسئلې څېړل، چې زه له یوه غله څخه د وسلې په اخیستلو کې ښه یا بد عمل کووم، په دې پورې اړه نلري، چې دا وسله د کومې موخې لپاره کارول کېږي؟ د جنایتکارانه او نا عادلانه جګړې او یا په حقه او ویاړلې جګړې لپاره؟

هو، خاربښت څه بده ناروغي ده او د هغه کس دنده، چې مجبور دی هغه کسانو ته، چې په دې ناروغۍ اخته دي، حمام ورکړي، خومره ګرانه ده.

## پایله:

شمالي امریکائیانو د ۱۸مې پېړۍ په پای کې د انګرېز پر ضد په خپلې آزادي بخښونکې جګړې کې له اسپانیا او فرانسې څخه، چې د انګرېز رقیبان وو او په هماغه اندازه استعماري غله شمېرل کېدل، مرسته واخیسته. ویلای کېږي، په هغه دور کې «داسې کینې بلشویکان» موندلای شو، چې په په پام کې یې لرل، د دغه امریکائیانو... د «کرغیړنې» معاملې په هکله د «لاس ته راغلې تجربې» په نامه یو کتاب.... **ولیکي!**

لنین د فبرورۍ د ۲۲مې په غونډه کې، چې د دې موضوع پای ته رسولو لپاره جوړه شوې وه، حضور نه درلوده. نو په همدې دلیل یې خپل نظر دوی ته په دې ډول ورولیږلو:

«د روسیې د بلشویک ګوند مرکزي کمیټې ته: لطفا زما رایه د انګلیس او فرانسې د غارتګرو امپریالیستانو څخه د کچالانو او وسلې د لاس ته راوړلو په ګټه ومنئ.»